# یو شعر

## چې کرکه ده، پاڅون دی او انتقام



## یو شعر چې کړکه ده، پاځون دی او انتقام

هو،
زما شعر
سوځونکې ډیوه ده
چې شپه سوځوي
او د دې ځایل په تروږمه کې
– په دې ډار کې–
ستوري کري

زما شعر
شاید هغه ګل دی
چې د وینو په موسمونو کې زرغونیږي
او یا زما شعر
هغه ټوپک دی
چې د شپې په تورو غونډیو
مردکي وروي!
(م. سرشک)

"په سلګیو کې موسکا" د احمد فواد لامع شعري ټولګه ده چې په 85 مخونو کې چاپ شوې ده. که څه هم زه حق نلرم د شعر د شکل او فورم په اړه خبرې وکړم، خو د شعر د لوستونکي په توګه مې دا حق دی چې د شعر د منځپانګې په اړه خپل نظر څرګند کړم.
له دوو کلونو راپدیخوا له فواد لامع سره آشنا یم او په تیرو دوو کلونو کې مې د نوموړي شعرونو ته غوږ ایښودلی او خپل نظر مې د هغه د شعرونو په اړه په ډاګه څرګند کړی دی. په دې موده کې مو د شعر او انساني ارزښتونو، د شعر اصالت او د شـاعر د رسالـت په اړه پراخې خـبرې کړې دي، خو...
خو بالاخره د لامع د شعرونو غورچاڼ "په سلګیو کې موسکا" ټولګې راغونډ کړي او زه یې دې ته وهڅولم چې د شاعر د شعرونو منځپانګې په اړه خپل نظر ولیکم. باید ووایم چې د فواد لامع شعرونه د شکل له پلوه پیاوړي، سلیس، روان، سمبولیک او له نوښتګرانه انځورونو څخه ډک دي.
ښه به دا وي چې د ټولګې له نوم څخه پیل وکړم.
د "په سلګیو کې موسکا" له نوم څخه داسې ښکاري چې پنځه ویشت کلن شاعر د تیرو پنځه ویشتو کالو ناخوالو، جنایتونو، دردونو، کړاونو، اوښکو، ویر، ټپونو، زګیرویو، وینې، سوځیدلو شونډو او اننګو، ستی هډوکو او په وینو لړلو زلفو په سلګیو راوستلی دی او د ولسونو مبارزې او د تلپاتې اتلانو مقاومت، د سلګیو تر څنګ د هغې پر شونډو مسکا شیندلې، خو داسې نه ده.

د ټولګې طرحه، چې د شاعر د نوښتګرانه ذهنیت ښکارندوي کوي، د یو هڅاند او ژمن شعر لوستونکي په ذهن کې له ناهیلو سره سره د هیلې روڼ انځور کاږی. دا طرحه چې یو مات زړه د یوې سکروټې په توګه انځوروي، لوستونکي ته داسې تصویر ورکوي چې ګنې د شاعر زړه له هغه ټولو جنایتونو، خیانتونو او ناورین څخه مات شوی چې په تیرو پنځه ویشتو کالو کې پر ولس یې تیر شوي، خو شاعر بیا هم ناهیلې شوی نه دی او مات زړه یې لکه سکروټه، خځلې سوځوي او په تروږمه کې سپرغی کوي، خو داسې نه ده.

"په سلګیو کې موسکا " د ښاغلي علم ګل سحر په سریزه پیل کیږي. دا سریزه د لامع د ستایلو تر څنګ د شعر پر ډولونو او د شاعر څخه د لا ښه شعرونو په هیلې پای ته رسیږي. په دې سریزه کې ښاغلي سحر د لامع شعرونو منځپانګې او مضمون او فکري دریځ ته هیڅ ډول اشاره نه ده کړې او یوازې شاعر یې د "مینه ناک انسان" په ویلو سره ښه شاعر ګڼلی دی.

ښاغلی سحر په سریزه کې د شاعر په اړه لیکي: "د ده احساسات، خبرې او کړه وړه به مې چې لیدل، تل به راسره دا پوښتنه وه چې لامع ولې شاعر نه دی؟"

زه پوه نشوم چې د ښاغلي سحر موخه له احساساتو څخه څه ده او د کومو احساساتو انځورول کولای شي یو څوک شاعر کړي؟ زه پوه نشوم چې کړه او وړه څرنګه او ولې باید یو څوک شاعر کړي؟

دا ربښتیا خبره ده چې لامع "احساسات" لري، خو ښاغلی سحر د دې احساساتو څرنګوالي ته هیڅ اشاره نه کوي او نه وایي چې آیا دا احساسات فردي دي که د لامع له ربښتیني ژوند څخه یې سرچینه اخیستې ده؟

تر هغه ځایه چې ما د لامع د "احساساتو" په وړاله کې غوټې ووهلې، دا "احساسات" په زلفو، شونډو، معبدونو، سوچونو، خوبونو او خیالونو سینګار شوي. دا احساسات فردي دي او د ټولنې وګړې یې جدي نه نیسي، دا هغه احساسات دي چې په شپه کې کنګل کیږی او د سهرني لمر په راختلو ویلي کیږی. دا احساسات هومره کوچني او ناڅیزه بریښي چې وینې (د ایران فمینیسته لیکواله سیمین دانشور وایي چې کلیمې د انسان د وینې حیثیت لری او نه باید څپله وینه په کمه بیه او بې ارزښته شیانو ککړه کړو) ته اړتیا نلري او د اس ام اس له لارې لیږدول کیدای شي.

د لامع احساسات د ولسونو له دردونو او رنځونو سره کوم تړاو نلري. د کوځې له هغه ماشوم سره کوم تړاو نه لري چې په ډیرانونو کې کاغذونه لټوي یا په خواړو پسې ګرځي او یا د امریکایي سرتیرو په بمبارۍ کې بلهاري کیږي او یا هم د بنسټپالی په اور کې سوځي. د لامع احساسات د هغو ښوونکو له کورنیو سره کوم تړاو نلری چې د پوهنې غلیمان یې سرونه پرې کوي (په داسې حال کې چې د لامع مور او پلار زړه سواندي او سپیڅلي ښوونکي دي).

لامع پنځه ویشت کاله په رنځونو او کړاونو کې خاپوړې کړي او د وینو په دریابونو کې یې لامبو وهلې او د یوه تنکي زلمي په توګه یې لومړی د جهادي بنسټپالو بربریت لیدلی او بیا یې د طالبانو کیبلونه خوړلي دي او اوس یې مېنه د زیړو شیطانانو ځاله ګرځیدلې ده، خو د لامع احساسات د پنځه ویشتو کالو دروندوالی او پرتم نلري. سره له دې چې دا ځوان او د روان قلم شاعر چې د شعر ویلو ښه استعداد لري، پنځه ویشت کاله یې باروت بوی کړي او د وینې رنګ یې لیدلی، خو شعر او احساسات یې نه د باروتو د بوی تریخوالی لري او نه هم د وینې ګرموالی. زموږ لامع لا د خوبرویانو په خیالونو کې ډوب دی او لا د صنم په زلفو کې ځانګي. له همدې امله احساسات یې له ټولنې سره اړخ نه لګوي او شعر یې سوداګریزه بڼه مومي. د لامع ټولګه یوازې د شاعرانه نذر په توګه د نورو "شاعرانو" تر منځ کاریدلای شي.

همدا ډول علم ګل سحر په دې سریزه کې کاږي: "لامع صاحب.... یو ښه شاعر او تکړه کیسه لیکوال هم دی، خو لا زموږ په ادبی کړیو کې ډیر مشهور نه و."

دلته دوه خبرې اهمیت لري: لومړی دا چې آیا لامع په ربښتیا هم یو ښه شاعر دی که نه؟ دویم دا چې ولې ښاغلی سحر د شاعر مشهوریدل یوازې په ادبی کړیو کې ګوري؟

د افغانستان په څیر هیوادونو کې چې خونړی تاریخ او واکمنان لري، ښه شاعر هغه ته ویل

کیږي، چې د ولسونو د لارښودنې دنده پر غاړه واخلي. ښه شاعر هغه دی چې د دې پر ځای چې د خلکو شاته پټ پټ روان وي، باید د خلکو سلیقه او ذوق په هاند او هڅې سره خپل ځان پسې راوکاږي او د خلکو له فکري تحمیق څخه ناوړه ګټه پورته نکړي. ښه شاعر هغه ته ویل کیږي چې د خپلې ټولنې د حالاتو په وړاندې بې تفاوته پاتې نشي او د ظلم، بدمرغی، بې عدالتی او ناتار په وړاندې اعتراض وکړي او د تاریخ په زهرجن ګوګل کې د ولسونو روح فریاد کړي.

ښاغلی سحر، آیا لامع د ولسونو د لارښود دنده تر سره کړې ده؟ آیا لامع د خلکو مخې ته روان دی؟ آیا لامع د خلکو سلیقه او ذوق بدل کړی؟ آیا لامع د خپلې ټولنې د حالاتو په وړاندې غبرګون ښودلی؟ آیا لامع د ظلم، بدمرغی، بې عدالتی او ناتار په وړاندی اعتراض کړی دی؟آیا لامع د تاریخ روح انځور کړی؟ پرته له شکه ځواب مو منفي دی، نو ولې او د څه لپاره هغه ته ښه شاعر وایاست؟؟

ښاغلی سحر، آیا د دې لپاره لامع ښه شاعر ګڼئ چې د تاریخ د روح د انځورولو پر ځای تاریخ تحریفوي؟ آیا د دې لپاره لامع ته ښه شاعر وایئ چې د ظلم په وړاندې د اعتراض پر ځای د هجران او د بخت د تورو وریځو څخه زګیروی کوي؟ آیا تاسو د دې له پاره لامع ته مینه ناک شاعر وایئ چې د بی عدالتی او بدمرغی پر ضد نه غږیږی او پر ځای یې د طبیعت په منظر کې د خپلو بې ارزښته دردونو تجلا ګوري؟

ولې لامع ستاسو په اند ښه شاعر دی، داسې نه چې تاسو هم د لامع په شان ښه شاعر ووسئ!

دویم دا چې، ښاغلی سحر د شاعر مشهوریدل په ادبی کړیو کې ګوري نه د ولسونو تر منځ. په یاد لرم چې د ډاکټر اکبر اکبر د کتاب د پیژندنې په غونډه کې ښاغلي استاد بختاني د یوې پوښتنې په راپورته کولو سره ویلي وو چې ولې ولسونه زموږ (شاعرانو) غونډو ته نه راځي او تل په خپله موږ د یو بل شعر ته غوږ نیسو. د بختاني دا خبره زموږ د نننې شعر او بانډري شعرونو تر ټولو ښه او روښانه انځور ښکاره کوي.

دا چې ولې ښاغلی استاد علم ګل سحر د شاعر مشهوریدل د ولسونو پر ځای په ادبي کړیو کې ګوري او ولې استاد بختانی پر ادبي کړیو نیوکه لري، په پښتو ادبیاتو کې د سوداګریز شعر خبره راپورته کوي. له هغه ځایه چې سوداګریز شعر د خلکو له فکري تحمیق څخه پر ګټې اخیستنې زیږول کیږي او د خلکو له دردونو او رنځونو او ټولنیز ژوند سره کومه اړیکه نلري، نو یوازې د شاعر د کتابتون په رپ او یا هم د ادبي کړیو تر منځ پاتې کیږي او ولس یې پروا نلري. ولس هغه شعر لولي چې وینه ولري، خبرې وکړي، له هغوی سره وژاړي، له هغوی سره ښادي وکړي، هغوی مقاومت ته راوبلي او د بې عدالتی په وړاندې یې پاځون ته وهڅوي. ولس هغه شعر لولیچې د نزار قبانی په وینا د باروتو بوي او د سرطانې وینې رنګ ولري. له هغه ځایه چې د ادبي کړیو د شاعرانو شعر نه د باروتو بوي لري او نه هم د شعر په رګونو کې یې سرطاني وینه شته او په شعرونو کې یوازې د معشوقې د اوربل عطرجنه وړمه څپه وهي او د وینې پر ځای د هجران اوښکې تویوي، نشي کولای د خلکو زړونو ته لار ومومي.

هغه شعرونه چې د ادبی کړیو د مشغولتیا له پاره نه زیږول کیږي، کلیمې دومره ځواک لري چې په واټونو کې انقلابونه راپاروي او په کوکارو سره د بریا زیری ورکوي. د میوند ملالی لنډۍ د دې له پاره وکړای شول ښکیلاکګر په ګونډو کړي، چې ادبي مشغولتیا نه وه او د ولسونو د قهر څپې ګڼل کیدې. همدا ډول د رپ ترانو د نیویارک او هارلم په ښارونو کې د تورپوټکو د مبارزې انګازې خپرې کړې او دا د نیویارک او هارلم واټونه وو چې د "پیغام" ترانه یې د زړګونو انسانانو پر شونډو زمزمه کړه، نه ادبي کړی:

لاس مې وسلې ته وړم
څکه چې غواړې ما ووژنې
ما زغم ته مه هڅوئ، نور د زغم توان نلرم

زه د وروستي ځل لپاره ترانه وايم
دا ځای د يوه ځنګل په څير دی
او کله په حيرانتيا کې ډوبيږم
چې څرنګه کولای شم ځان وژغورم

امريکايي سندرغاړي جان لنون کلونه وړاندې د "تصور وکړه" تر عنوان لاندی د ويتنام د جګړې ضد ترانه غږولې وه، او له هغه ځايه چې دې ترانې وينه لرله او د باروتو بوي يې درلود، د لسيزو په تيريدو سره يې يو ځل بيا د عراق د جګړې ضد زرګونه امريکاييان واټونو ته راوويستل:

تصور وکړه چې ټول انسانان
د نن له پاره ژوند کوي...

تصور وکړه چې هيڅ هيواد نشته
پولې له منځه تللي
تصور يې سخت نه دی
....
د مړينې او مرګ له پاره هيڅ پلمه نشته
تصور وکړه چې ټول انسانان
په سوله کې ژوند کوي
....

شايد ووايې زه خوب وينم
خو زه يوازې نه يم
زه د هغې ورځ په هيله يم چې ته موږ سره يوځای شې
او نړۍ يوه شی.

د جان لنون، ترانه د دې له پاره نن يو ځل بيا د امريکا واټونه ډکوي، ځکه هغه په دې باور و چې هنر بايد آشفته خيالونو ته د پای ټکی کيږدي او د ستم کړۍ ماته کړي. خو د ادبي کړيو د شاعرانو شعر هيڅکله دا ځواک نلري او نشي کولای آن دوه تنه هم د ظلم او استبداد په وړاندې واټونو ته راوکاږي.
ښاغلی سحر ليکي: "راځئ چې په شعر قضاوت وکړو نه په شاعر."
شعر له شاعر څخه جلا ارزول غير ديالکتيکي ارزونه ده. شعر له شاعر څخه جلا کول د يوې ټوکې لوستلو ته پاتې کيږي. شعر د شاعر له ذات او احساساتو څخه سرچينه اخلي او بايد پر دواړو (شعر او شاعر) يو ځای قضاوت وشي. يو جنايتکار شاعر هيڅکله د عدالت لپاره شعر ويلی نشي، او که چيرې داسې وشي خلک د هغه شعر ته د يوې چنې په اندازه هم ارزښت نه ورکوي، ځکه شاعر يې پر عدالت باور نلري.
هيڅ شاعر له خپل شعر څخه جلا ګڼل کيدای نشي. شعر او شاعر له يوه بل سره تړاو لري. يو ځای او د يوه پوټکي لاندې ژوند کوي. شعر د شاعر وينه ده او دا وينه هغه مهال پاکه ګڼل کيدای شی چې شاعر پاک وي. که د شاعر وينه ناپاکه وي هيڅوک دې ته حاضر نه دی چې د هغه لـه وينې څخه د خپل ژونـد د بقـا له پاره کار واخلي. لـه هغه ځـايه

چې چاپیریال او ټولنه شاعر زیږوي، شاعر کولای شي د خپلو شعرونو له لارې پر چاپیریال او ټولنې اغیزه وکړي. که چیرې شاعر سپیڅلی وي، نو دا اغیزه به سپیڅلې وي او که چیرې شاعر سپیڅلی نه وي، نو دا اغیزه به هم سپیڅلې نه وي.
سیمین بهبهاني، شعر خپل ژوند او اړتیا ګڼي او وایي که چیرې شعر راسره نه وای، نو بې ارزښته موجود به وای او د ساه کښلو ارزښت به مې هم نه درلودلای او په دې ډول غواړي د شعر او شاعر نه جلا کیدونکې اړیکې ډیرې مهمې وښیي.
ښاغلی سحر د "په سلګیو کې موسکا" سریزه داسې غزوي: "ښاغلی لامع مینه ناک انسان دی. دی په رښتیني مینې باور لري او هغه کسان چې مینه تش یو هوس بولي، دغه راز کسان له مینې څخه رټل شوي بولي. "
مینه په بیلابیلو کلتورونو کې بیلابیله معنا او مفهوم لري. د بیلګې په توګه په لویدیځو هیوادونو کې له انجلۍ سره عشق او یوځای کیدلو ته مینه وایي. په داسې حال کې چې په ختیځو هیوادونو کې مینه بیله معنا لري. په دې هیوادونو کې مینه له تن څخه جلا ده او مین دې ته نه وایې چې له معشوقې سره اړیکې ولري. د دې هیوادونو په خوځنده او پرمختللي ادبیاتو کې ډیر لږ د ښکلولو خبرې کیږي. دلته مین شاعر، پاڅون کوونکي، اعتراض کوونکي او لالهانده شاعر ته ویل کیږی. یو مین شاعر په هیڅ توګه نشي کولای یوازې د یوې معشوقې عاشق پاتی شي. د شاعر عشق هغه مهال اهمیت مومي چې په انساني عشق واوړي. یعنې دا چې شاعر باید له ولسونو سره مینه ولري. عرب شاعر نزار قباني وایي چې په شعرونو کې یې له عشق څخه موخه نړیواله مینه ده او هغه میرمن چې په خپلو شعرونو کې ستایي هغه د نړۍ ټولې میرمنې دي او د ایران مبارز شاعر احمد شاملو له خپلې میرمنې(آیدا) سره مینه داسې ستایي:

ما دې سترګو او شونډو سره
مینه پیدا کړه
ستا له تن سره مې مینه پیدا کړه،
یو ناکراره څیز په ما کې آرامتیا ومونده
یو څه په ما کې وغوړیدل
زه بیا د خپل ماشومتوب په زانګو کې خوب یووړلم
او خپله پخوانۍ موسکا مې

بیا ومونده
.....
غږ درته کوم غوږ راته ونیسه، زړه مې درته غږ کوي
شپې ګردچاپیر راته دیوالونه جوړ کړي
د زړه له پنجرې ستا ستورو ته ګورم
څکه هر ستورى یو لمر دى

زه په لمر باور لرم
زه په سیند باور لرم
او ستا سترګې د سیندونو سرچینه ده
انسان د سیندونو سرچینه ده.

لامع په مینه باور لري، خو نه په رښتینې مینې. هغه خپله مینه په تقدیر، خواږه وصل، د معشوقې د مینې انکار، د مینې

ښتونه او په تاويزونو کې ګوري. لامع د يو "مينه ناک" شاعر په توګه لا د سترګو د ښايست، د شونډو له سوروالي، د وصل له خونده، د هجر له محبته او د حسن له صحيفو څخه، چې پيړۍ وړاندې پيل شوي، سترې نه دی او په دې کوڅو کې د مينې تاويزونو او ښتونو پسې لالهانده ګرځي.

څوک په رښتينې مينې باور لري او مينه تش هوس نه بولي او دغه راز کسان چې ژوند يې پر هوس ولاړ دی له مينې څه رټل شوي بولي، د "په سلګيو کې موسکا" شاعر که ا. سايه؟

ډيره موده ده، ګاليا!
زما په غوږ کې د دلبرۍ افسانې مه وايه!
نور زما نه د مينې ترانې مه غواړه!
ډيره موده ده، ګاليا
کاروان رهي شوی.
زما او ستا مينه؟
آه.....

دا هم يوه کيسه ده
څو دا وخت چې ټول د شپې د ډوډۍ له پاره
لالهاند دي
نور د کيسو له پاره مهال نشته.

( ا.سايه)

لامع اوري او ګوري چې دا وخت د هيواد شپږ ميليونه خلک يې له لوږې سره مخ دي، ۵۰۰۰۰ ماشومان يوازې په پلازمينه کابل کې دروېزګري کوي، د بيوزلۍ له امله بدلمني مخ په ډېريدو ده، په سلو کې ۵۶ ځوانان وزګار دي، په سلو کې يوازې ۰،۱۵ تنه لوړو زده کړو ته لاسرسی لري. په هرات کې پيغلې په اور کې وريتيږي، په بدخشان کې پر ميرمنو ډله ايزه تيری کيږي، کوچنۍ ماشومه د قمار په ميدان کې له سپي سره بدليږي، سويل يې په وينو کې ډوب دی، په درې کيلومترۍ کې يې شيرپور لوټيږي، هيواد يې د نيواکګرو لاس ته پريوځي او... خو زموږ د"مينه ناک" شاعر "احساسات" کنګل شوي او يوازې د معشوقې په وريښمينو زلفو کې زنګيږي او مينه د هوس په غوجل کې حلالوي.

له سريزې وروسته، شاعر د "دغه ټولګه" تر نامه لاندې، په لنډو کې د شعر په اړه خپل نظر کاږلی دی. د "په سلګيو کې موسکا" شاعر ليکي: "ځينې کسان شعر او شاعري يو تفنن ګڼي او يا وايې چې هنر يوازې د هنر له پاره دی. خو زه پر دې باور نه يم."

د لامع د شعرونو په لوستلو سره به دې پايلې ته ورسيږو چې شاعر، شعر ته د تفنن په سترګه ګوري که د بدلون د وسيلې په توګه؟ آيا هغه پر رسالتمن شعر باور لري؟ که يوازې شعر د شعر له پاره وايی؟؟

که د شاعر له لومړي غزل څخه پيل وکړو، نو ويلی شو چې لامع شعر د تفنن په توګه کاروي. په دې غزل کې شاعر د خوبونو، خيالونو، معبدونو او خوبرويانو شاعر دی او د "حسن صحيفې په سوچونو کې" او "خپل قسمت د زلفو په تاوونو کې لولي":

*د پاکو هيلو کرښې، په خوبونو کې لولمه*

*تعبیر مې د خوبونو، په خیالونو کې لولمه*

*د مهرپه مانا مې، زړه ایمان نه و راوړی*
*خو اوس یې پاک سرود په معبدونو کې لولمه*

*کوډګر د کوڅې نه یم چې کرښې د لاس ګورم*
*تقدیر د خوبرویانو، په باغونو کې لولمه*
*....*
*د سترګو تور قلم مې، ستا انځور کې پاته راغی*
*د حسن صحیفې دې، په سوچونو کې لولمه*

*د لاس غریبې ګوتې، اندېښنو په تاو راوستی*
*قسمت یې ستا د زلفو په تاوونو کې لولمه*

د دې غزل په لوستلو دې پاېلې ته رسیږو چې شاعر له شعر سره تفنني چلند لري او باورمن دی چې شعر یوازې د شعر له پاره باید وویل شي. په داسې حال کې هغه ژمن او رسالت لرونکی شاعران چې د شعر پر تفنن باور نلری او شعر د تیرې وسلې په توګه کاروي، خپل هوډ او هیله داسې انځوروي:

زما د ګونډو کولو بې ځایه هڅه
پرېږدئ
راشئ،
زه رحم نه غواړم
ستاسو په وینو لړلی څټک
به زما د سترګو په ښونې کې
ناکامه شي.
زه په ناسته نه، ولاړ به مړ شم
ترانو مې رازده کړه
له آزادئ سره مینه

او ترانې به مې رازده کړي
بې له ډاره مړینه
زما ژوند د خلکو له پاره یوه ترانه وه
او مړینه به مې د آزادئ د جګړې لپاره
انګازه شي.
(موسی جلیلوف – تاتاری شاعر)

د لامع د شعر قلم چې کله په ګډا شي، په هوسونو، خیالونو، د بخت په تورو وریځو، غمونو او هجران کې نیشه کیږي او په داسې حال کې چې د ژوندون څپانده سیند په بهیدو دی، هغه خوب وړي او کله چې له خوبه راپاځیږي، د مینې غوټۍ یې رژیدلې وي او پر نصیب یې بلبل ژاړي او هغه بیا په نمجنو سترګو ویده کیږی او د ژوندون څپانده سیند لا په بهیدو وي. په داسې حال کې چې زموږ د شاعر په شعرونو که نه کرکه شته او نه انتقام، نه پاڅون شته او نه اور، نه غرور شته او نه سرغړاوی؛ خو نادر نادرپور د کرکې، انتقام او پاڅون شاعر دی، نه د زلفو او جامونو:

*په زړه کې مې یو شعر دی*
*یو شعر چې حرفونه نه دي، هوس نه دی، زګیروی نه دی*
*یو شعر چې اور دی*

*یو شعر چې ستې مې، سوځوي مې مدام*
*یو شعر چې کرکه ده، پاڅون دی او انتقام*
*یو شعر چې له هیڅ غوږ سره آشنا نه دی*
*یو شعر چې له هیڅ نوم سره تړاو نه مني*

*په زړه کې مې یو شعر دی*
*یو شعر چې خوښ یې لرم خو ویلی یې نشم*
*غواړم ویې وایم، غواړم ویې نه وایم*

*یو شعر چې د لیدنې په څیر په هیڅ قالب کې ځای نشی*
*یو شعر چې د چوپتیا په څیر پاتې شوی په یوې شونډې*
*یو شعر چې د ژوند لیوالتیا ده، د مړینې ویره ده*
*یو شعر چې کوکاره ده، لمبه ده او غوغا ده*
*یو شعر چې لکه غرور سرلوړی او سرغړونکی دی*
*یو شعر چې اور دی!*

د "په سلګیو کې موسکا" شعرونه د معشوقې په مکیز، خندا، ژړا، خوږو خوږو خبرو، دعا، ښیرا، غصې، قهر، شور، شڼا او هجران کې ډوب دي او د شاعر یوازینۍ هیله دا ده چې معشوقه یې ورچیغې کړي:"چې په دې لویه نړۍ کې یار مې نشته، بې له تا".

*که خندا که یې ژړا*
*که مکیز که یې ادا*
*که خوږې خوږې خبرې*
*که دعا که بې ښیرا*
*که غصه او که یې قهر*
*که یې شور که بې شڼا*

.....

*خو چې ووايي جانان مې*
*په اخلاص او په صفا*
*چې په دې تړوله نړۍ کې*
*يار مې نشته، بې له تا!*

خو د ترکيې نامتو شاعر ناظم حکمت، شعر د مکيز او ناز او کرشمې او د معشوقې هجران نه ګڼي:

زما په ټاټوبي کې
کټ مټ ستاسو د ټاټوبو په شان
په سلو کې اتيا څلک ليک او لوست نشي کولای
شعرونه په ترانو اوري او خوله په خوله تکراريږي
زما په ټاټوبي کې شعرونه په بيرغونو بدليدی شي
کټ مټ ستاسو د ټاټوبو په شان
ورونو،
زموږ شعرونه بايد وکړای شي د ډنګرې او خوارې غوا تر شا وتړل شي
او ځمکه قلبه کړي
بايد د شولو په کروندو کې
تر زنګونونو په ډنډونو کې ډوب شي
بايد وکړای شي
هر څه وپوښتي
بايد وکړای شي تولې رڼاوې غنچه کړي
بايد وکړای شي د لارو پر سر ودريږي
او د کيلومتر شميرونکو ډبرو په شان
بايد نژدې کيدونکی دښمن له ټولو وړاندې وپيژني
بايد وکړای شي په ځنګلونو کې تام تامونه وغږوي
تر هغه چې په نړۍ کې يو اسير هيواد او يو اسير انسان پاتې وي
او په آسمان کې يوه اټمي وريځ

زموږ شعرونه بايد خپل ټول مال او ځان
فکر او اند
د لويې آزادۍ په لاره کې بلهاري کړي.

د لامع شعر په ترانو بدليدې نشي او خوله په خوله نه تکراريږي، ځکه چې شعر يې په هلمند کې د ډنګرې غوا تر شا نشي تړل کيدی، شعر يې ځمکه قلبه کولای نشي، د بغلان په نهرين او د کندز په چهاردرې کې د شولو په کروندو کې تر زنګونونو ډوبيدلی نشي. نژدې کيدونکی دښمن نه پيژني او له هغه ځايه چې شعر يې هيڅ فکر نلري، د لويې آزادۍ په

لاره کې بلهاري کيدی نشي. هيواد لا اسير دی او انسانان په اسارت کی ژوند کوي، خو زموږ د شاعر شعر د خپلواکی په بيرغ بدليدی نشي، ځکه د شاعر شعر د حسن په صحيفو کې نيشه دی او نيشه ای شعر رڼاوې غنچه کولای نشي.
د لامع شعر نه يوازې دا چې دښمن پيژندلی نشي، له دښمن څخه د ژوند لپاره سوال کوي:

*زه د مرګـي له تياري کندې څخه نه ويريږم*
*پام چې ډارن نه يمه*
*خو لږ څه صبر وکړه*
*ځکه تر اوسه مې جنت ته تلوسه نشته*

خو هغه شاعران چې دښمن پيژني او شعرونه يې د کيلومتر شميرونکو ډبرو په شان دښمن تر ټولو دمخه ګوري، د مرګ په وړاندې داسې فرياد کوي:

نه، کومه ويره نشته
زه په زرهاو ځل
تيرباران شوی يم
او په زرهاو ځل يې
زما ښايسته زړه له دار څخه ځړولی دی
او په زرهاو ځل يې
د تاريخ ټولو شهيدانو سره
زما څوټکيدلې وينه
پر ځمکې تويه کړې ده.

(ابتهاج سايه)

د لامع په شعرونو کې د بې عدالتی او نابرابری، د زخمونو او ټپونو، د جنايتونو او خيانتونو او ناخوالو او ناتارو په اړه څه نه موندل کيږي. پوښتنه دا ده چې کوم احساس لامع شاعرکړی دی؟ حال دا چې زموږ د سيمې پياوړي شاعران لکه اخوان ثالث د ژوندانه کړاونو، دردونو، رنځونو، د ملتونو بدمرغيو او بې عدالتيو شاعران کړي دي او له شعر څخه يې د چړې په توګه د غليم پر ضد کار اخيستی دی.
لامع د دې پر ځای چې د ټولنې د نيمايي ځواک پياوړتيا انځور کړي، په خپلو شعرونو کې ميرمنې د عشق او مينې وسيله ګڼي او د ميرمنو د شونډو، زلفو او سترګو په ښايست کې د خپلو هيلو غوټې مومي. کله چې ميرمنې د لامع د دې ليد پر ضد اعتراض کوي او له شاعر څخه تښتي، شاعر خپل ځان شرمنده ګڼي او ټول بدن يې په کرکې بدليږي:

*نه مې دا وس و، چې شم تـم ورسره*
*نه مې مخ ته يې په ځير کتای شوای*
*ښايې د مينې شرمنده يې اوسم*
*او يا د خپل مات شوي زړه په کسات*
*ترينه اوس کرکه او نفرت لرمه!*

عرب شاعر نزار قباني له میرمنو څخه کرکه نلري. هغه له میرمنو سره مینه لري او وايي چې میرمنې د آزادۍ د لاس ته راوړلو یو پیاوړی ځواك دی. قباني د دې له پاره میرمنو ته شعر وايي چې هغوی د خلیفه ګانو او د قبایلي چارواکو له اسارت څخه آزادې کړي. قباني د دې له پاره میرمنو ته شعر وايي چې هغوی له پخلنځي څخه راوباسي، کنیزتوب ته یې د پای ټکی کیږدي او د درمند پر ځای په ټولنه کې ورګډې شي او د تاریخ بهیر ګړندی کړي.

د لامع هلمندۍ، زابلۍ، کندهارۍ، ارزګانۍ، هراتۍ او بدخشانۍ خویندې په سرو وینو کې لت پت دي او په لمبو کې سوځي خو زموږ شاعر د سوځېدلو میرمنو د ټپونو پولۍ نه ګوري او داسې کاږي:

*مینه دې اور شوله، شغله شوه ټول راوینغاړمه*
*ځان مې لمبه شو، هډ مې وسوځید، ځیګر مې کړم*
*نه دې ستایلې شم زما مینې په دا څو کرښو کې*
*نه چې ښایست دې راته مات کړ هم د ذهن قلم؟*

رښتیا، ولې زموږ د شاعر ځان، پر یوې پیغلې د تیري په اوریدلو سره نه لمبه کیږي، هډ یې نه سوځي او....؟؟ ولې زموږ د شاعر ځان د جنایتونو په وړاندې نه شغله کیږي او زړه یې اور نه اخلي؟؟ زموږ شاعر د ښایست په شغلو کې سوځي خو فلسطینی شاعر د ناتار په وړاندې شغله او هډ یې سوځیږي:

که مجبور شم ډوډۍ له لاسه ورکړم
که مجبور شم خپل کمیس او بالاپوش وپلورم
که مجبور شم ډبرې ماتې کړم
یا بار وچلوم
یا جارو وکړم
که مجبور شم ستا زیرمتونونه پاک کړم
یا په ډیرانونو کې خواړو پسې وګرځم
یا له لوږې مړ شم
او د ځمکې لاندې شم
ای د بشر دښمنه
زه به جوړجاړی و نه کړم
او تر وروستۍ سلګۍ پورې
تا سره جنګیږم.

(سمیح القاسم)

لامع څه کوي؟ زموږ شاعر له دښمن سره جوړجاړی کوي، که تر وروستۍ سلګۍ پورې جنګیږي؟ آیا لامع به وکړای شي د بشر د دښمن د ځپلو له پاره خپل کمیس او بالاپوش وپلوري؟؟ نه. نه یې شي، ځکه هغه په کوڅو کې په تاویزونو پسې ګرځي.

په داسې حال کې چې یوازې په سویل کې نژدې دوه سوه زره ماشومان ښوونځي ته نشي تللی، د هیواد په ګوټ ګوټ کې ښوونځي سوځي او د ښوونکو سرونه غوڅیږی، لامع د بشریت د دښمن پر ضد آن یوه اوښکه هم نشي تویولی، د کمیس او بالاپوش پلور خو پریږده. لامع د دې ټولو جنایتونو په وړاندې چپه خوله ناست دی او پر اننګو یې اوښکې نه تویيږی او پر ګریوان یې سرې چینې نه بهیږي. دا یوازې د معشوقې مکیز دی چې لامع ژړوي او پر ګریوان یې سرې چینې تویوي:

*زما لیمې کمزورې نه وې*
*چې د اوښکو باران جوړ کړي*
*خو دا ستا تږو خیالو مې*
*پر سپیره ګریوان، په مینه*
*سرې چینې وبهولې!!*

د لامع د خیالونو نړۍ هومره کوچنۍ ده چې انسان ورته هک پک پاتې کیږی. په دې نړۍ کې چې بیوزلي، ناروغي، ډله ایزه وژنې، لوټ، د ماشومانو وژل او... ورځ تر بلې سیوا کیږی، د شاعر لومړنۍ او وروستۍ خبره دا ده:

*هیښه پاته وه له مینې*
*په کرار یې راته ووی*
*چې که موږ سره جلا شوو*
*ستا وروستۍ خبره به څه وي؟*
*زه یې لا هیښ کړمه له ځانه*
*هک حیران ورته ولاړوم*
*وې عجیبه مې پوښتنه*
*خو ځواب ته مې تلوار دی*
*له خیاله رابهر شوم*
*د هجران غم مې په زړه شو*
*ورو مې وویل چې آخر به*
*زه اول کلام تکرار کړم :*
*پر ما ګرانه یې له هر څه!*
*پر ما ګرانه یې له هر څه!*

ربښتیا زموږ او د امریکا د تورپوټکي شاعر تر منځ څومره توپیر دی. د امریکا تورپوټکی شاعر لینګسټن هیوز په شعر کې د لومړي او وروستي ځل له پاره هیله کوی چې وینه یې د انقلاب په ویالو کې توی شی تر څو په نړۍ کې زبیښاک ته د پای ټکی کیښودل شي. هیوز خپله لویه نړۍ داسې انځوروي:

زه په خپلو خیالونو کې داسې نړۍ وینم

چې هلته هیڅ انسان بل انسان خوار نه ګڼي
ځمکه له مینې او ملګرتیا څخه ډکه ده
او سوله او سوکالي، ځپله لاره سینګاروي

زه په ځپلو خیالونو کې داسې نړۍ وینم
چې هلته، ټول د آزادۍ پرتمینه لاره پیژني
کرکه څوک نه پیژني
او لالچ، ژوندون پر موږ نه توروي
زه په ځپلو خیالونو کې داسې نړۍ وینم
چې هلته تور یا سپین
ـــ د هر توکم چې وي ـــ
د ځمکې له پراخو نعمتونو څخه برخمن دی
هر انسان آزاد دی
بدمرغي له شرمه سر ښکته اچوي
او ښادي د لوړیبې مرغلرې په شان
د ټول بشریت اړتیاوې پوره کوي.

زموږ ولس دښمنان لري، خو شاعر مو دښمن نلري. شاعر په خپلې ټولګې کې له آسمانه ګیله من دی. شاعر له آسمانه غواړي چې داسې د عشق پیغام وشیندی چې جنایتکاران، بنګسالاران، پاټکیان، خادیان، اماراتیان او جهادیان ټول له یو بل سره غاړه غاړې او د نړیوالې ټولنې په غیږ کې مکیزونه پیل کړي.

*آسمانه موږ خو څه دښمن دې نه وو*
*چې دې زموږ هیلې په بړلی وویشتې*
*موږ خو له وریځو دې باران وغوښته*
*داسې باران چې،*
*له سپینو وریځو نه پر تورو زړونو*
*د عشق پیغام وشیندي*
*او بیا دې لمر په سترګکو کې لږ موسکی غوندې شي*
*په خپلو نرمو وړانګو*
*د محبت تخم زرغون کړي پر دې وچو، سپیرو*

خو د چیلي نامتو شاعر پابلو نرودا نه یوازې دا چې له خپلو دښمنانو سره غاړه غړی نه دی، بلکې خپل دښمنان داسې ګواښي:

زه د جلاد پر ضد
چې د وژنې فرمان یې ورکړی
د هغه خاین پر ضد

چې د واکمنۍ لپاره
منګولې يې ککړې
په دې بې رحمه جنايت دي
د سزا اعلان کوم.

په دې ټولګه کې ظاهراً څو ټولنيز شعرونه هم راغلي دي. دې شعرونو د لامع ټولګې ته د يوه لوی پلورنځي بڼه ورکړې ده. په يوه سوپر مارکيټ کې هر پيرونکی کولای شي خپل دخوښې توکي په بيلابيلو بيو تر لاسه کړي. د لامع په ټولګه کې هم داسې ځينې شعرونه راغلي چې ټولنيز اړخ لري، خو په دغه اړخ کې هم جوړجاړی ليدل کيږی. د لامع شعرونه تخديرکوونکي دي. د دې پر ځای چې ځوانان خوځښت ته وهڅوي، هغوی په رنګينو خيالونو او سوچونو کې روږدوي.دا ټولګه د دې پرځای چې د غشي په توګه وکارول شي، د نشه ای توکو د پيچکاری بڼه لري. دا شعرونه په نامستقيمه توګه ارتجاع او بنسټپالۍ ته خدمت کوي. ځکه د يوه شاعر شعر د هغه او د ټولنې بيوګرافي ګڼل کيږي. که چيرې په شعرونو کې په داسې حال کې چې رنځ وي، درد وي، خيانت وي او جنايت، د بلبل، عشق، مينه، عطرينه وږمه، سرې شونډې، سلايي، سپينه سپوږمۍ او له زلفو خبرې وشي، د دې ښکارندوی کوي چې د شاعر د ژوند په مهال نه رنځ و، نه جنايت او نه خيانت. يو شاعر چې پنځه ويشت کاله پر واټونو وينه ليدلي وي، باروت يې بوي کړي وي، د وسلو په لوګيو کې لوی شوی وي؛ د خلقيانو، پرچميانو، جهاديانو او طالبانو جنايتونو بې د ژوند هره شيبه ګواښلي وي او په خپلو شعرونو کې يې انځور نکړي، په دې مانا ده چې د خپل ژوند بيوګرافي غلطه ليکي او له تاريخ سره جفا کوي. زموږ شاعر پوهيږي چې جنايتکاران په دې لټه کې دي چې د خپلو جنايتونو نښې نښانې ورکې کړي او زموږ شاعر د دې لټې د پياوړتيا يوه ښه وسيله ده.

هغه شعر چې دښمن ته ځورونکی نه وي او ځورونکی فکر ونلري، سوداګريز شعر ګڼل کيږي. سوداګريز شعرونه يوازې د واکمنانو د ګټو د خونديتوب په موخه کارول کيدای شي. يو شمير شاعران داسې استدلال کوي چې پوهه ورکوونکي شعرونه "سياسي" او "شعاري" دي. که پوهيايي ورکوونکي شعرونه سياسي ګڼل کيږي، نو تفنني شعرونه هم کولای شو سياسي وګڼو. توپير يوازې په پرمختللي او ارتجاعي سياست کې دی. پرمختللی سياست له شعر څخه د خلکو د پوهيايي او د استبداد په وړاندې د پاڅون له پاره کار اخلي، حال دا چې ارتجاعي سياست له شعر څخه د خلکو د تخدير او صوفيانه ژوند ته د هڅولو لپاره کار اخلي. د پرمختللي سياست شعر په واټونو کې د عدالت، برابرۍ، انسانيت، سوکالۍ او د دموکراسۍ پرتمنيه ترانه غږوي، حال دا چې د ارتجاعي سياست شعر بې عدالتي، نابرابري، ظلم او ستم ډيروي او د بلوسګرۍ لمن غزوي.

د پرمختللي سياست شعر د ولسونو په زړونو کې ځای لري او زرګونه انسانان سره راټولوي او د بيوزلۍ پر ضد يې يووالي ته هڅوي، حال دا چې د ارتجاعي سياست شعر د څو خراباتی کسانو لخوا کلابند دی او په ادبي کړيو کې بند پاتې کيږي:

يوه ناخبره ډله له شاعر څخه راچاپيره شوې
لکه مچانو د شاعر په غوږ کې د ستايلو نغمې لولې
شاعر بې خياله او غمجن دا نغمې اوري
او په مات شوي زړه رباب غږوي (پوشکين)

شايد ووايې زه خوب وينم

خو زه يوازې نه يم

زه د هغې ورځ په هيله يم چې ته موږ سره يوځاى شې

او نړۍ يوه شى

ميند
ځپرنويه

١٣٨٧